تعليم الايمان
مدلل
دعقائدو
ابتدايي کتاب
مؤلف
مولوي محمد خان مقبول کدنوي
ناشر
المكتبة الحقانية
مسجد کوڅه بوغره روډ چمن
۰۳۱۱۸۳۳۴۰۸۸

بسم الله الرحمن الرحيم

وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى ﴿سورة الفتح﴾ ﴿الآية ٢٦﴾

# تعليم الايمان

مدلل

دعقائدو ابتدايي كتاب

مؤلف

مولوي محمد خان مقبول كدنوي

ناشر

المكتبة الحقانية

مسجد كوڅه بوغره روډ چمن ۰۳۱۱۸۳۳۴۰۸۸

# دکتاب پېژندنه

دکتاب نوم : ........................ تعليم الايمان

تاليف لطيف : ........................ مولوي محمد خان مقبول

تصحيح اونظر ثاني : ........................ پخپله مولف حفظه الله

چاپ : ........................ المكتبة الحقانية

مسجد کوڅه بوغره روډ چمن 0311 8334088 \\\\\\ 0700275065



زموږ سره د پښتو، عربي، فارسي، اردو او انګريزي کمپوز ژباړې او چاپ اسانتيا سته همداراز ستاسو اسلامي، علمي، ادبي، تاريخي، ژبنيز او فرهنګي کتابونو خپرولو يوازنی اداره دتماس لپاره 03003988249 0707032793

**اعتذار** : موږ ترخپله وسه پوره دتصحيح پوره کوشش کړيدی خو بيا هم که کومه غلطي په نظر درسي إصلاح يې کړئ اوموږته خبر راکړئ چي دبيا چاپ لپاره إصلاح سي اوتاسي هم دخير په کار کي راسره شريک سئ . والسلام . 0334 6587208

يوضروري درخواست

**موږ دغه رساله د الله جل جلاله په فضل سره تکميل کړه له مدرسينو حضراتو څخه دا هيله کوو چي دماشومانو په درسي نصاب کي دې شامله کړي ترڅو يې نفع عامه سي .**

اللهم اغفرلي ولوالدي ولجميع المسلمين المظلومين .آمين .

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ
شروع کوم په نامه د هغه خدای ﷻ چي ډېر مهربانه او بخښوونکي دي

اَعُوۡذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيۡطٰنِ الرَّجِيۡمِ
پناه غواړم په خدای سره دشیطان څخه چي ترټلی دی

## د اسلام پنځه ﴿۵﴾ بناوي دي

**﴿۱﴾: اوله کلمه طَیّبه ﴿یعني پاکه اونیکه﴾**

لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوۡلُ اللّٰهِ

نسته هيڅ لائق د عبادت ماسیوا د یو الله ﷻ څخه، او مُحَمّد ﷺ رَسُول د خدای ﷻ دي

**﴿۲﴾ دوهم: پنځه وخته لمونځ ادا کول دی.**

سهار ،ماپښین ، مازدیګر ،ماښام او ماخوستن .

**﴿۳﴾ : دریم : درمضان دمیاشتي روژه نیول .**

**﴿۴﴾ : څلورم : زکوة دمال ورکول .﴿۵﴾ : پنځم : حج کول .**

## په اسلام کي څلور ﴿۴﴾ مذهبه دي

بخاري شریف صفحه ۶ جلد اول

**﴿۱﴾ اول : دامام اعظم ابوحنیفة رَحۡمَةُ اللّٰهِ عَلَيۡهِ .**

**﴿۲﴾ دوهم :دامام شافعي رَحۡمَةُ اللّٰهِ عَلَيۡهِ .**

**﴿۳﴾ دریم : دامام مالک رَحۡمَةُ اللّٰهِ عَلَيۡهِ .**

**﴿۴﴾ څلورم : دامام احمد بن حنبل رَحۡمَةُ اللّٰهِ عَلَيۡهِ .**

تفسیر مظهري صفحه ۴۳ جلد دوهم

**موږ دامام اعظم ابوحنیفة رَحۡمَةُ اللّٰهِ عَلَيۡهِ په مذهب یو.**

---

**سوال : امام اعظم ابوحنیفة رَحۡمَةُ اللّٰهِ عَلَيۡهِ دچا په مذهب دی ؟**

---

ځواب: امام اعظم ابو حنيفة رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ په خپل مذهب دی.
سوال : خپل مذهب يې دڅه شي څخه ؤ ؟.
ځواب :خپل مذهب يې د قرآن شريف او د احاديثو څخه ؤ .
سوال : قرآن شريف دچا قول دی ؟.
ځواب : قرآن شريف د الله جَلَّ جَلَالُهُ قول دی .
سوال : حديث دچا قول دی ؟.
ځواب : حديث دمحمد عَلَيْهِ السَّلَامُ قول دی .
دامام اعظم ابو حنيفة رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْهِ اصلي نوم نعمان اود پلار نوم يې ثابت وو. وطن يې افغانستان ؤ. ردالمحتار صفحه ۶ جلد اول

## دا يمان فرضونه

سوال : دا يمان فرضونه څودي ؟.
ځواب : دايمان فرضونه دوه دي
﴿۱﴾ اول : اقرار په ژبه سره .
﴿۲﴾ دوهم : تصديق په زړه سره . رحمت بيان صفحه ۶۱ جلد اول

## دايمان حكمونه

سوال : دايمان حكمونه څودي ؟.
ځواب : دايمان حكمونه اوه ﴿۷﴾ دي .چي پنځه ددنيا سره تعلق لري او دوه دآخرت سره .

﴿۱﴾ **اول** : چي ایمان راوړي ازاد به سي دوږلو څخه .
﴿۲﴾ **دوهم** : خلاص به سي دبندي کېدو څخه .
﴿۳﴾ **دریم** : مال به یې په امان سي .
﴿۴﴾ **څلورم** :دناحقه زهیرېدلو څخه به په امان سي.
﴿۵﴾ **پنځم** : له بد ګمانۍ څخه به خلاص سي .
﴿۶﴾ **شپږم** : ددوږخ له ابدي عذاب څخه به خلاص سي .
﴿۷﴾ **اووم** : جنت به یې ځای وي . رحمت بیان صفحه ۸۱ جلد اول

## دایما ن صفتونه لس ﴿۱۰﴾ دي

﴿۱﴾ **اول** : ایمان راوړل پر الله جل جلاله .
﴿۲﴾ **دوهم** : ایمان راوړل پرملائکو د الله جل جلاله .
﴿۳﴾ **دریم** : ایمان راوړل پر کتابو د الله جل جلاله .
﴿۴﴾ **څلورم** : ایمان راوړل پرنبیانو د الله جل جلاله .
﴿۵﴾ **پنځم** : ایمان راوړل پر ورځ دآخرت .
﴿۶﴾ **شپږم** : ایمان راوړل پردې چي خیراو شر له جانبه دالله جل جلاله دی.
﴿۷﴾ **اوم** : ایمان راوړل پر بیا راژوندي کېدلو وروسته ترمرګ .
﴿۸﴾ **اتم** : ایمان راوړل پرنومانو د الله جل جلاله .

﴿۹﴾ نهم : ایمان راوړل پر صفاتو د الله جل جلاله .

﴿۱۰﴾ لسم : قبلول د الله جل جلاله حکمونه او رکنونه .

رساله قطب الدین صفحه ۱۶۱

## سل ﴿۱۰۰﴾ صحیفې او څلور ﴿۴﴾ لوی کتابونه دي

لس ﴿۱۰﴾ صحیفې پر آدم علیه السلام نازلي سویدی.

لس ﴿۱۰﴾ صحیفې پر ابراهیم علیه السلام نازلي سویدی.

پنځوس ﴿۵۰﴾ صحیفې پر شیث علیه السلام نازلي سویدی.

دېرش ﴿۳۰﴾ صحیفې پر ادریس علیه السلام نازلي سویدی.

## څلور ﴿۴﴾ لوی کتابونه

﴿۱﴾ اول : زبور پر داؤد علیه السلام نازل سویدی .

﴿۲﴾ دوهم : تورات پر موسی علیه السلام نازل سویدی.

﴿۳﴾ دریم : انجیل پر عیسی علیه السلام نازل سویدی .

﴿۴﴾ څلورم : قرآن کریم پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نازل سویدی .

التفسیرات الاحمدیه صفحه ۳۷

## دایمان اوه ﴿۷﴾ شرطونه دي

﴿۱﴾ اول : ایمان په غیبو راوړل .

﴿۲﴾ **دوهم** : علم غيب خاصه د الله جل جلاله بلل

﴿۳﴾ **دريم** : په خپل اختيار ايمان راوړل.

﴿۴﴾ **څلورم** : چي الله جل جلاله حلال کړي وي هغه حلال بلل

﴿۵﴾ **پنځم** : چي الله جل جلاله حرام کړي وي هغه حرام بلل

﴿۶﴾ **شپږم** : د الله جل جلاله دعذابه بيريدل.

﴿۷﴾ **اوم** : د الله جل جلاله درحمت اميد کول . رحمتيان صفحه ۷۶ جلد اول

## دايمان دراوړو دوه ﴿۲﴾ شرطونه دي

﴿۱﴾ **اول** : عقل دی. ﴿۲﴾ **دوهم** : بلوغ دی

ردالمحتار صفحه ۲۹۵ جلد شپږم

### دايمان ساتلو درې ﴿۳﴾ شرطونه دي

﴿۱﴾ **اول** : شکر پر ايمان کول .

﴿۲﴾ **دوهم** : بيره پرزوال دايمان کول .

﴿۳﴾ **دريم** : پرچا ظلم نه کول . رحمت بيان صفحه ۸۳ جلد اول

## دايمان اوه ﴿۷﴾ واجبه دي

﴿۱﴾ **اول** : سرسايه اداکول . ﴿۲﴾ **دوهم** : اختری کول .

﴿۳﴾ **دريم** : وتر کول . ﴿۴﴾ : **څلورم** : وسيله رحمي کول.

﴿۵﴾ : **پنځم** : دمور او پلار خدمت کول .

﴿۶﴾ : شپږم : دښځي لپاره دخپل خاوند خدمت کول .

﴿۷﴾ : اوم : عمره کول . رحمت بیان صفحه ۳۱۸ جلد اول

اسلام اوایمان سره یو دی . دین ددواړو لپاره نوم دی .

ابوالمنتهی صفحه ۸۳

د حضرت محمد ﷺ دپلار نوم عبدالله او دمور نوم یې بي بي آمنة اودرضاعي ﴿شیدي ورکونکې﴾ مور نوم یې حلیمه ده .

تنبیه الغافلین صفحه ۳۹۰

## دایمان اوه ﴿۷﴾ سنته دي

﴿۱﴾ اول : سنتي کول دي . ﴿۲﴾ دوهم : برېتونه کوچني کول دي . ﴿۳﴾ دریم : د پوزي ورېښتان غچي کول دي .

﴿۴﴾ څلورم : نوکان کوچني کول دي .﴿۵﴾پنځم : دبغلو ﴿تخرګو﴾ ورېښتان کښل یا خریل دي .﴿۶﴾ شپږم :دنارینه لپاره د سر ورېښتان څوني کول یا خریل دي.

﴿۷﴾ اوم : ترنامه لاندي ورېښتان خریل دي . رحمت بیان صفحه ۲۵۸ جلد اول

## په قبر کي درې ﴿۳﴾ سواله نکیر او منکر کوي

﴿۱﴾ اول سوال: ﴿ مَنْ رَّبُّکَ ﴾ رب دي څوک دی؟.

﴿۱﴾ اول جواب :رب مي الله جل جلاله دی

﴿۲﴾دوهم سوال: ﴿وَمَادِیْنُکَ ﴾ دین دي څه دین دی؟.

﴿۲﴾ **دوهم جواب:** دين مې اسلام دی.

﴿۳﴾ **دريم سوال:** ﴿وَمَنْ نَّبِيُّكَ﴾ نبي دې څوک دی؟

﴿۳﴾ **دريم جواب:** نبي مې حضرت محمد ﷺ دی.

**بخاري شريف صفحه ۱۸۳ جلد اول**

## داوداسه دواجبېدلو شرطونه ﴿۵﴾ پنځه دي

﴿۱﴾ **اول:** مسلمان به وي پر کافر اودس واجب نه دی.

﴿۲﴾ **دوهم:** بالغ به وي نابالغه اودس واجب نه دی.

﴿۳﴾ **دريم:** عاقل به وي پرليوني پرمست اوبې هوښه اودس واجب نه دی.

﴿۴﴾ **څلورم:** داوبو پراستعمال به قادروي که قادر نه وپراستعمال داوبو نو بيا اودس نه دی پرواجب.

﴿۵﴾ **پنځم:** دونه وخت به وي چې اودس اوتکبير تحريمه دواړه په کښې ځايېږي مثال کافرپه دومره تنګ وخت کې اسلام راوړی چې اودس اولمونځ دواړه نه کې ځايدل نو بيا اودس نه دی پرواجب. يا **مثال** نابالغه په دومره

تنگ وخت کي بالغ سو چي اودس او تکبیر تحریمه دواړه نه کي ځایدل نو بیا اودس نه دی پر واجب.
علم الفقه صفحه

## داوداسه دصحت شرطونه ﴿۳﴾ دري دي

﴿۱﴾ اول: داوداسه ټولو اندامو ته اوبه رسول که دیوه وربښته اندازه ځای وچ پاته سو نو اودس یې صحیح نه دی.
﴿۲﴾ دوهم: چي داوداسه پر اندامو به داسي شئ نه وي چي اوبه اندامو ته نه پرېږدي لکه تنکه کوتمی یا ایلفي.
﴿۳﴾ دریم: چي داوداسه په حالت کي داوداسه ماتونکي شیان به نه وي ماسوا دمعذور شخه لکه وچاته چي دسوزاک ناجوړي وربښه سوې وي هروخت یې بولي رواني وي نو ددغه چا اودس په دغه حالت کي صحیح کیږي . علم الفقه صفحه ۵۳

## داوداسه فرضونه ﴿۴﴾ څلور دي

﴿۱﴾ اول: مخ پرېولل د تندي څخه بیا ترزني پوري دیوه غوږ څخه بیا تر بل غوږ پوري .
﴿۲﴾ دوهم: لاسونه پرېولل تر بړی پوري بړی هم په کښي داخلي دي.

﴿۳﴾ **دریم** : دسر څلورمه حصه مسح کول دی.
﴿۴﴾ **څلورم** : دپښو پرېولل تر بجلکو پوري بجلکي هم په کښې داخلي دي. هدایه صفحه ۴

## داوداسه واجب ﴿۴﴾ څلور دي

﴿۱﴾ **اول** : دوریځو پرېولل واجب دی.
﴿۲﴾ **دوهم** : پرېږه اوبه تېرول که ګڼه وه پوست یې نه ښکاره کېدی اوکه کوسه ؤ پوست یې معلومېدی نوبیایې پرېولل فرض دي.
﴿۳﴾ **دریم** :دبرېتو پرېولل واجب دی.
﴿۴﴾ **څلورم** : که دیوچا په لاس کښې بل لاس راشین سوی ؤ ددالاس پرېولل واجب دی که یې کار ځني اخیستلای سو . یایې په پښه کې بله پښه راشنه سوې وه ددا پښې پرېولل واجب دی که یې کار ځني اخیستلای سو. کتاب الفقه صفحه ۵۳

## دتيمم دوجوب ﴿۷﴾ اوه شرطونه دي

﴿۱﴾ اول شرط: اسلام دی پر کافر باندي تيمم نه دی واجب.

﴿۲﴾ دوهم شرط: عقل دی پر ليوني باندي تيمم نه دی واجب.

﴿۳﴾ دريم شرط: بلوغ دی پر نابالغ باندي تيمم نه دی واجب.

﴿۴﴾ څلورم شرط: اوداسه يا غسل ته به اړتياوي که اړتيا نه وي پاک وي پر هغه تيمم نه دی واجب.

﴿۵﴾ پنځم شرط: پر کومو شيانو چې تيمم جائزوي د هغه شيانو پر استعمال به قادروي که پر هغه شيانو چې تيمم پر جائز دی قادر نه وٌنو بيا تيمم نه دی پر واجب.

﴿۶﴾ شپږم: دلمانځه دوخت د تنګيدو دجي تيمم نه پرواجبيږي.

﴿٧﴾ اوم : دومره وخت به وي چي تيمم اولمونځ به دواړه په کښي ځاييږي که دومره وخت نه ؤ چي تيمم اولمونځ دواړه نه په کښي ځاييدل نو بيا تيمم نه دی پرواجب. کتاب الفقه صفحه ١٣٢

## دتيمم دصحت ﴿٦﴾ شپږ شرطونه دي

﴿١﴾ اول : اسلام دی، د کافر تيمم نه دی صحيح .

﴿٢﴾ دوهم : نيت کول دی چي دا تيمم دپاکی لپاره يادلمانځه لپاره يادقرآن شريف دتلاوت لپاره هرعبادت چي کوي دهغه نيت به کوي .

﴿٣﴾ دريم: ټوله مخ او دواړه لاسونه مسح کول دي.

﴿٤﴾ څلورم: دتيمم پراندامو به وازګه اوګوتمی نه وي.

﴿٥﴾ پنځم : پوره دواړه لاسونه يا دهغو پرزياتره حصه مسح کول .

﴿٦﴾ شپږم : په کومو شيانو چي تيمم ماتيږي هغه شيان به نه وي . کتاب الفقه صفحه ١٣٢

## دتيمم فرائض ﴿۴﴾ څلور دي

﴿۱﴾ اول : نيت کول .
﴿۲﴾ دوهم : پرخاوره دواړه لاسونه وهل .
﴿۳﴾ دريم : مخ مسح کول .
﴿۴﴾ څلورم : لاسونه دڅنګلو سره مسح کول .
کتاب الفقه صفحه ۱۳۷ جلد اول

## دتيمم واجب ﴿۳﴾ دري دي

﴿۱﴾ اول : دتنګي ګوتمې تنګ ساعت او تنګو بنګړو کښل واجب دي.
﴿۲﴾ دوهم : که داوبو دنژدې والي دليل وي نو بيا سل ګامه پسې تلل يا بل څوک پسې ليږل واجب دی .
﴿۳﴾ دريم : که دملګري سره اوبه وي او دورکولو اميد يې وي نو اوبه څني غوښتل . مظاهر حق صفحه ۵۵۷ جلد اول

## دغسل دواجبدلو ﴿۷﴾ اوه شرطونه دي

﴿۱﴾ اول : مسلمان به وي پر کافر باندي غسل نه دی واجب .

﴿۲﴾ دوهم :بالغ به وي پرنابالغ باندي غسل نه دی
واجب .
﴿۳﴾ دريم : عاقل به وي پر مست پرليوني اوبېهوښه
باندي غسل نه دی واجب .
﴿۴﴾ څلورم : د پاکو اوبو پر استعمال به قدرت لري
که د پاکو اوبو پراستعمال قدرت نه درلود نو بيا
غسل نه دی پرواجب . ﴿۵﴾ پنځم : دومره وخت به
وي چې غسل اولمونځ به دواړه په کښي ځاييږي
که دومره وخت نه ؤ چې غسل اولمونځ دواړه نه په
کښي ځاييدل نو بيا غسل نه دی پرواجب .
﴿۶﴾ شپږم : لويه بې اودسيا به ورپيښه وي که لويه
بې اودسيا نه وه ورپيښه نو بيا غسل نه دی پرواجب .
﴿۷﴾ اوم : چې لويه بې اودسيا ورپيښه سول په دستي
غسل کول نه پر لازميږي لکه دشپې په اوله حصه کې
جنب سو يا ښځه دحيض څخه پاکه سوه دسهارو خوا تا
دي غسل وکړي .  کتاب الفقه صفحه ۱۷۷ جلد اول

## دغسل دصحت ﴿۳﴾ درې شرطونه دي

﴿۱﴾ اول : ټول بدن پرېولل دي که ديوه وربښته په اندازه وچ ځای پاته سونو غسل يې نه صحيح کيږي .
﴿۲﴾ دوهم : پربدن به داسي شئ نه وي چي بدن ته اوبه نه پرېږدي لکه ګوتمۍ،رنګ،يا تنګ بنګړی .
﴿۳﴾ دريم : هغه شيان چي دهغوی په وجه پر انسان باندي غسل واجبيږي لکه دغسل په حالت کي مني راووزي ياحيض نه وي ختم سوی ښځه غسل کوي نو داغسل نه صحيح کيږي . علم الفقه صفحه ۸۴ جلد اول

## دغسل ﴿۳﴾ درې فرائض دي

﴿۱﴾ اول : خوله پرېولل .
﴿۲﴾ دوهم : پوزه پرېولل .
﴿۳﴾ دريم : ټوله بدن پرېولل . هدايه صفحه ۱۰ جلد اول

## دغسل واجب ﴿۴﴾ څلور دي

﴿۱﴾ اول : په خوله اوبه غرغره کول .
﴿۲﴾ دوهم : په پوزه اوبه سوڼ کول .
﴿۳﴾ دريم : دښځو اوناريته ؤ لپاره دسرورېښتيانو خلاصول او پرېولل .

﴿۴﴾ څلورم : د پوزي ترنرمی پوري اوبه رسول .
علم الفقه صفحه ۹۴ جلد اول

## دلمانځه ﴿۸﴾ اته شرطونه دي

﴿۱﴾ اول : په پاکو اوبوسره اودس کول که پاکي اوبه نه وي بيا تيمم وهل .
﴿۲﴾ دوهم : دبدن پاکوالی .
﴿۳﴾ دريم : د کالو پاکوالی .
﴿۴﴾ څلورم : چي پرکوم ځای لمونځ کوي هغه ځای به پاک وي .
﴿۵﴾ پنځم : عورت پټول دی دنارينه عورت د نامه څخه بيا ترځنګنوپوري دی ښځه ټوله عورت ده مخ يې نه دی عورت په لمانځه کي لاسونه تر مړوندو پوري نه دی عورت په لمانځه کي پښې تربجلکو پوري نه دی عورت .
﴿۶﴾ شپږم : د قبلې طرفته مخ کول .
﴿۷﴾ اوم : د لمانځه نيت کول .
﴿۸﴾ اتم : لمونځ په خپل وخت کي کول . شروط الصلوة

## دلمانځه فرائض ﴿۶﴾ شپږدي

﴿۱﴾ اول : اول تکبیر تحریمه ویل دي .
﴿۲﴾ دوهم : که عذر نه وي په ولاړي لمونځ کول دی .
﴿۳﴾ دریم : د قرآن شریف دري کوچني آیتونه ویل دي یا یو اوږد آیت ویل .
﴿۴﴾ څلورم : رکوع کول .
﴿۵﴾ پنځم : سجدې کول .
﴿۶﴾ شپږم : آخره ناسته دومره کول چي التحیات په کښي ویل کیږي . هدایه صفحه ۹۲

## دلمانځه واجب ﴿۷﴾ اوه دي

﴿۱﴾ اول : الحمد لله ویل .
﴿۲﴾ دوهم : اوله ناسته کول .
﴿۳﴾ دریم : په آخره ناسته کي التحیات ویل .
﴿۴﴾ څلورم : دامام په زوره قرائت ویل په هغه وخت کي چي په زوره ویل کیږي .
﴿۵﴾ پنځم : دامام په پټه قرائت ویل په هغه وخت کي چي په پټه ویل کیږي .

﴿۶﴾ شپږم : اَللّٰهُمَّ اِنَّا دعايي قنوت يا اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا وترو په اخري رکعت کي ويل دي .

﴿۷﴾ اوم : په رکنو کي به اراموالي کوي . شروط الصلوة

## دلمانځه مفسدات﴿۱۴﴾ څوارلس دي

﴿۱﴾ اول : غاړي تازه کول دي بې له عذره .

﴿۲﴾ دوهم : ويل دي نُرږي والا ته يرحمک الله .

﴿۳﴾ دريم : فتح ورکول دی ماسوا دخپل امام .

﴿۴﴾ څلورم : کلمه دلَآ اِلٰهَ اِلاَّ الله ويل دی که په قصد دجواب وو اوکه په قَصَدَ دخبر تياوو نو بيالمونځ نه فاسدوي .

﴿۵﴾ پنځم : لڅېدل دعورت دي .

﴿۶﴾ شپږم : پورته کول دژړادی که د درده څخه اويا له غمه څخه وو اوکه وه ژړا ديادولو دجنت څخه يا ديادولو د دوږخ څخه نو بيا لمونځ نه فاسدوي .

﴿۷﴾ اوم : جواب ورکول دسلام په لاسوسره يا په ژبه سره .

﴿۸﴾ اتم : يادېدل د قضائي لمانځه چي ترتيب يې نه وي ساقط سوی .

﴿۹﴾ نهم :عمل کثیر «دېر کار کول» دی که په لاس سره وي یا په بل اندام سره .
﴿۱۰﴾ لسم :خبري کول که په قصده سره وي یا په هېره سره .
﴿۱۱﴾یولسم:خوراک یا چیښاک کول دی په لمانځه کي.
﴿۱۲﴾ دولسم : په لمانځه کي «اه یا آو یا اوه» کول .
﴿۱۳﴾ دیارلسم :په لمانځه کي خندا کول په زوره یا کرار خندل .
﴿۱۴﴾ څوارلسم : بېسده کېدل په لمانځه کي . شروط الصلوۃ

## دروژې دفرضیت شرطونه ﴿۴﴾ څلور دي

﴿۱﴾ اول : مسلمان به وي پر کافر فرض نه ده .
﴿۲﴾ دوهم : عاقل به وي پر لېوني فرض نه ده .
﴿۳﴾ دریم : بالغ به وي پر نابالغ فرض نه ده .
﴿۴﴾ څلورم : علم به لري په فرضیت دروژې .

نورالایضاح صفحه ۱۳۵

**دروژې دواجب والي داداء کولو لپاره شرطونه ﴿۳﴾ درې دي**

﴿۱﴾ اول : جوړووالی دی له داسي ناجوړی څخه چي روژه نه سي نیولای.

﴿۲﴾ دوهم : ښځه به په حيض اونفاس کي نه وي .

﴿۳﴾ دريم : مقيم به وي مسافر به نه وي . نورالايضاح صفحه ۱۳۵

## دزکوة دواجبېدلو شرطونه ﴿۱۲﴾ دولس دي

﴿۱﴾ اول : مسلمان به وي پر کافر زکوة نسته .

﴿۲﴾ دوهم : بالغ به وي پر نابالغ واجب نه دی .

﴿۳﴾ دريم : عاقل به وي پر لېوني واجب نه دی .

﴿۴﴾ څلورم : دزکوة په فرضيت به خبر وي .

﴿۵﴾ پنځم : ازاد به وي پر غلام نسته .

﴿۶﴾ شپږم : دداسي شي دنصاب خاوند به وي چي يو کال پاته کېدای سي اوهغه شيان چي پوره يو کال په خپل حال روغ نه سي پاته کېدلاي لکه خټکي اونوره ترکاري نو په هغو باندي زکوة فرض نه دی بلکه عشر دی .

﴿۷﴾ . اوم : دکال په سراوپای دواړو کي به دپوره نصاب خاوند وي .

﴿۸﴾ اتم : دداسي قرض څخه به خلاص وي چي مال ټوله په کښي ولاړ سي ده ته شئ نه سي پاته .

﴿۹﴾ نهم : مال به دضرورت اصلي څخه زيات وي .

﴿۱۰﴾ لسم : مال به یې په خپل یاد خپل وکیل په واک کې وي .
﴿۱۱﴾ یولسم : له دادرو صفتو څخه به یوصفت په دغه مال کې وي هغه داچې نقدیت ،زیادت ، نیت دتجارت .
﴿۱۲﴾ دولسم : په دغه مال کې به دبل چا حق نه وي لکه عشر . علم الفقه صفحه ۲۱ جلد څلورم

## دزکوة د اداء کېدوشرطونه ﴿۵﴾ پینځه دي

﴿۱﴾ اول : مسلمان به وي پر کافر فرض نه دی .
﴿۲﴾ دوهم : زکوة ورکوونکی به عاقل وي پرلېوني فرض نه دی .
﴿۳﴾ دریم :دزکوة ورکولوپروخت دزکوة نیت کول دی که دزکوة دمال دجلاکېدو پروخت یې دزکوة نیت کړی وي نو دغه نیت یې صحیح دی.
﴿۴﴾ څلورم : کوم چاته چې زکوة ورکول کیږي هغه ددغه مال پوره مالک ګرځول .
﴿۵﴾ پنځم : دزکوة مال داسي چاته ورکول چې مستحق یې وي . علم الفقه صفحه ۲۱ جلد څلورم

## دعشر دوجوب شرطونه ﴿۴﴾ څلوردي

﴿۱﴾ اول :دعشري مځکي مالک به مسلمان وي نو پرده عشر سته که مالک يې کافروي بيا عشر نسته خراج پرسته .
﴿۲﴾ دوهم : مځکه به عشري وي خراجي به نه وي .
﴿۳﴾ دريم :دمځکي څخه به فصل راوتلي وي که مځکي حاصل نه وي کړی نو بيا عشر نسته .
﴿۴﴾څلورم. کرل سوي شی به داسي شی وي چي دهغه څخه به نفع اخيستل کېدلای سي. بدآئع الصنائع صفحه ۱۷۱-۱۷۸ جلد دوهم

## دحج دفرضيت شرطونه ﴿۸﴾ اته دي

﴿۱﴾ اول : مسلمان به وي پر کافر نه دي فرض .
﴿۲﴾ دوهم : عاقل به وي پر لېوني نه دي فرض.
﴿۳﴾ دريم : بالغ به وي پر نابالغ نه دي فرض .
﴿۴﴾ څلورم : ازاد به وي پر مريي نه دی فرض .
﴿۵﴾ پنځم :دحج وخت به وي .
﴿۶﴾ شپږم : قدرت به لري پر توښه باندي .
﴿۷﴾ اوم : قدرت به لري پر کرايه باندي .

﴿۸﴾ اتم : علم به لري په فرضیت سره دحج .

مظاهر حق صفحه ۳۴۰ جلد څلورم

## دحج دوجوب شرطونه ﴿۵﴾ پنځه دي

﴿۱﴾ اول: جوړ به وي ناجوړه به نه وي چې حج ور سره نه سي کولای.

﴿۲﴾ دوهم : مانع به نه وي لکه حکومت یا پاسپورټ .

﴿۳﴾ دریم :لاره به په امن وي .

﴿۴﴾ څلورم : که ښځه وي نو بیا به خپل خاوند یا محرم ورسره وي .

﴿۵﴾ پنځم :ښځه به په عده کې نه وي. نورالایضاح صفحه ۱۶۳

## دحج فرائض ﴿۳﴾ درې دي

﴿۱﴾ اول : احرام تړل . ﴿۲﴾ دوهم : پر عرفات درېدل دذوالحجې پر نهمه دلمرله زواله بیا دذوالحجې تر لسمي دسهار تر سپیدو پوري .

﴿۳﴾ دریم :طواف زیارت دی چې دذوالحجې دلسمي دسهار څخه بیاذوالحجې تردولسمي پوري دسرخریلو یا کوچني کولو څخه وروسته .

رحمت بیان صفحه ۱۰۵ جلد اول

## دحج واجبات ﴿۶﴾ شپږ دي

﴿۱﴾ اول : په مزدلفه کي درېدل .
﴿۲﴾ دوهم : دصفا اومروة په مینځ کي تګ کول .
﴿۳﴾ دریم : دشیطانانو ویشتل .
﴿۴﴾ څلورم : دحج قِران اوتمتع لپاره اختری کول .
﴿۵﴾ پنځم : دسر وربښتان خریل یا کوچني کول .
﴿۶﴾ شپږم : دبهرنیو ورغلو خلګو طواف رخصت کول .

مظاهر حق صفحه ۳۴۲ جلد څلورم

## دعمرې دوجوب شرطونه ﴿۸﴾ اته دي

﴿۱﴾ اول : مسلمان به وي .
﴿۲﴾ دوهم : عاقل به وي .
﴿۳﴾ دریم : بالغ به وي .
﴿۴﴾ څلورم : ازاد به وي .
﴿۵﴾ پنځم : دحج په دا پنځو ورځو کي مکروه تحریمي ده دذوالحجې دنهمه څخه بیا تر دیارلسمه پوري .
﴿۶﴾ شپږم : قدرت به لري پر توښه باندي .
﴿۷﴾ اوم : قدرت به لري پر کرایه باندي .

﴿۸﴾ اتم : علم به دعمري پرواجبا تولري · مظاهر حق صفحه ۲۴۰ جلد دوم

## دعمري فرائض ﴿۲﴾ دوه دي

﴿۱﴾ اول : احرام تړل داحرام لپاره تلبيه او نيت دواړه فرض دي . ﴿۲﴾ دوهم : طواف دی دطواف لپاره نيت فرض دی . معلم الحجاج صفحه ۲۰۵

## دعمرۍ ﴿۲﴾ دوه واجبه دي

﴿۱﴾ اول : ترصفا او مروة تګ کول .

﴿۲﴾ دوهم :دسر وربښتيا ن خريل يا کوچني کول .

معلم الحجاج صفحه ۲۰۵

## دشريعت حکمونه اته دي

﴿۱﴾ اول : فرض هغه دي چي په دليل قطعي سره ثابت وي بې له عذره پرېښوونکی يې فاسق اود عذاب لايق ګرځي او منکريې کافر دی .

## فرض بيا پر ﴿۲﴾ دوه قسمه دي

﴿۱﴾ اول : **فرض عين** ! فرض عين هغه دي چي کول يې دهر نر اوښځي لازم دي لکه !لمونځ ، روژه ،زکوة او داسي نور

﴿۲﴾ دوهم : فرض کفایي ! فرض کفایي هغه دی چې کول یې پرهر یوه ضروري نه وي بلکه دبعضو خلګو په اداء کولو سره دنوروخلګو له ذمې څخه ساقطیږي او که لږوخلګو نه وکړی نوټوله خلګ ګنهګاره کیږي لکه دجنازې لمونځ اوداسې نور.

ردالمحتار صفحه ۳۱۵ جلددوهم

﴿۲﴾ دوهم : واجب ! واجب هغه دی چې په دلیل ظني سره ثابت وي دلیل ظني هغه دی چې په ده کې بل ضعیف احتمال وي اوتر دلیل قطعي په درجه کې وروسته وي بې عذره پرېښوونکی یې فاسق دی او دعذاب لایق دی منکریې فاسق: مثال! په اخره ناسته کې التحیات ویل اوداسې نور . ردالمحتار صفحه ۵۲۹ جلددوهم

﴿۳﴾ دریم : سنّت ! سنّت هغه دی چې نبي علیه السلام یا اصحابو کړی وي سنّت پر﴿۲﴾ دوه قسمه دی یو سنّت مؤکد دوهم سنّت غیر مؤکد .

﴿۱﴾ اول : سنّت مؤکد هغه فعل دی چې نبي علیه السلام یا اصحابوهمېشه کړی وي بې عذره یې هیڅکله نه وي پرې ایښې لکه دسهار سنّت اوداسې

نور ددغه سنّت مؤکدحکم هم دعمل په اعتبارسره واجب دی بې عذره پرېښوونکی یې فاسق او ګنهګار دی او دنبي علیه السلام دشفاعت څخه بې نصیبه وي

﴿۲﴾ دوهم : سنّت غیرمؤکد! سنّت غیر مؤکد هغه فعل دی چي نبي علیه السلام یا اصحابو کړی وي بې عذره یې یووخت هم پرې ایښی وي کوونکی یې دثواب لائق دی نه کوونکی یې دعذاب لائق نه دی اودغه سنّت غیرمؤکد ته سنّت زائده هم وایي لکه دوترووروسته دوه رکعته کول اوداسي نور۔

ردالمحتار صفحه ۳۱۵ جلد دوهم

﴿۴﴾ څلورم : مستحب ! مستحب هغه فعل دی چي نبي علیه السلام اواصحابو کړی وي همېشه یې نه وي کړی یووخت وخت یې کړی وي کوونکی یې دثواب حقداره دی مثال :دمازدیګر دلمانځه ترمخه دوه رکعته کول اوداسي نور او پرنه کوونکي یې هیڅ ګناه نسته ،ومستحب ته مندوب هم وایي ۔

ردالمحتار صفحه ۵۱۲ جلد دوهم

﴿۵﴾ پنځم :حرام ! حرام هغه دي چي په دليل قطعي سره ثابت وي منکريې کافر دی کوونکی يې فاسق دی دعذاب لائق دی مثال : شراب څښل ،غلا کول ،درواغ ويل اوداسي نور ۰ ردالمحتار صفحه ۵۵۶ جلدنهم

﴿۶﴾ شپږم : مکروه تحريمي ! مکروه تحريمي هغه دی چي په دليل ظني سره ثابت وي کوونکی يې ګنهګاره دی دعذاب حقداره دی مثال : دامام ترمخه سجدې ته تلل اوداسي نور .

﴿۷﴾ اوم : مکروه تنزيهي ! مکروه تنزيهي هغه فعل دی چي په نه کولو کي يې ثواب دی اوپه کولو کي يې عذاب نسته مثال: لاسونه داول الله اکبر په وخت کي ترغوږولوړ پورته کول اوداسي نور .

ردالمحتار صفحه ۲۸۰ جلداول

﴿۸﴾ اتم : مباح ! مباح هغه فعل دی چي په کولو کي يې ثواب نسته اوپه نه کولو کي يې عذاب نسته لکه ښکار کول اوداسي نور ۰ ردالمحتار صفحه ۵۵۶ جلدنهم

## دتهجد دلمانځه نیت

نیت کومه چې دنبي علیه السلام پر سنّت طریقه د تهجد دوه رکعته لمونځ اداء کړم.

دلمانځه مسائل صفحه ۲۹۸

## دسجده تلاوت نیت

نیت کوم دسجده تلاوت په دوه تکبیره سره.

نفع المفتي والسائل صفحه ۱۲۷

## دقضایي لمانځه نیت

نیت کوم دزړه داخلاصه لمونځ کوم خدایه تاته دوه یا څلور رکعته قضایي ولاړیم مخ پر لوري د کعبې شریفي الله اکبر.

ردالمحتار صفحه ۱۲۵ جلددوم

## دڅابنت دلمانځه نیت

نیت کوم دزړه د اخلاصه لمونځ کوم خاص خدای تعالی لره چې څلور رکعته دڅابنت په سنّت طریقه دنبي علیه السلام اداء کړم.

## داشراق لمونځ

نیت کوم دزړه د اخلاصه لمونځ کوم خاص
خدای تعالی لره چي دوه رکعته داشراق په
سنّت طریقه دنبي علیه السلام اداء کړم.
دلمانځه مسایل صفحه ۳۰۲

## دجنازې دلمانځه نیت

زما نیت دی دزړه داخلاصه لمونځ کوم خاص
خدای تعالی لره لمونځ دجنازې په څلورو
تکبیراتو سره فرض کفایي ثنا وایم الله جل
جلاله لره سبحانک اللهم درود وایم پر نبي
علیه السلام اللهم صلّي اللهم بارک دعا کوم
دا حاضر میت ته اقتداء مي ده په دا حاضر
امام پسې مخ کوونکی یم طرفته دکعبې
شریفي الله اکبر که دچا دمړي دعا نه وي زده
نو بیا دي داسي وایي ای خدایه بخښه وکه
مورډته او مېندو او پلرو زموږ ته او دا مړي ته او

ټولو مؤمنانو خلکوته او ټولو مؤمنا توښځوته
ردالمحتار صفحه ۱۲۹ جلد دریم

## دفرض عین دلمانځه نیت

زما نیت دی چي اداء کړم الله تعالی جل جلاله ته دوه یا څلور رکعته فرض په دا حاضر وخت دسهار اقتداء مي ده په دا حاضر امام پسي مخ مي دی وطرفته د کعبې شریفې الله اکبر.
فتاوی قاضیخان صفحه ۴۱ جلد اول

## په فرض عین لمانځه کي به دا څلور شیان یادوي

﴿۱﴾ اول: معلومول دلمانځه. ﴿۲﴾ دوهم: الله جل جلاله لره. ﴿۳﴾ دریم: اقتداء مي ده.
﴿۴﴾ څلورم: مخ مي دی وطرفته د قبلې.
دا هغه وخت چي لمونځ په جماعت سره کوي او

## که یې یوازي کاوه بیا به درې شیان یادوي

﴿۱﴾ اول: معلومول دلمانځه. ﴿۲﴾ دوهم: الله جل جلاله لره. ﴿۳﴾ دریم: مخ مي دی وطرفته

د قبلې . او داهم په فرض عين لمانځه کې په
نورو ټولو لمنځو کې صرف دلمانځه نيت کول
کافي دی .دخاص لمانځه نوم او وخت
اخيستل ضروري نه دی که يې ياد کړي ښه
دی .

## صلوة الاوابين

چې دماښام دلمانځه وروسته شپږ رکعته نفل
کيږي په درې سلامه .

## دشکرانې لمونځ

دشکرانې لمونځ چې يوچاته نعمت ورسيږي
نودوه رکعته نفل کول کيږي .

## دتحية المسجد لمونځ

تحية المسجد لمونځ دهغه چالپاره دی چې
ومسجد ته ورداخل سي نودوه رکعته يا څلور
رکعته کيږي .

## دسفر لمونځ

کله چي يو څوک له خپل وطنه سفر کوي نو ده
ته مستحب دا ده چي دوه رکعته لمونځ وکړي.

## دتراويح نيت

نيت مي کړی دزړه د اخلاصه لمونځ کوم خاص
خدای تعالی لره دوه رکعته تراويح سنت
اقتداء مي ده په دا حاضر امام پسې ولاړ يم مخ
پر طرف د کعبې شريفي الله اکبر.

مظاهر حق صفحه ۵۷۸ جلد اول

## داستسقاء دلمانځه نيت

نيت کوم دزړه دا اخلاصه لمونځ کوم خاص
خدای تعالی لره دوه رکعته سنت مخ مي دی
وطرفته د قبلې شريفي الله اکبر

## دخسوف دسپوږمۍ دتور بدو لمونځ

نيت مي کړی دزړه د اخلاصه لمونځ کوم خاص خدای
تعالی لره دوه رکعته سنت مخ مي دی وطرفته د قبلې
شريفي الله اکبر.

## دکسوف دلمر دتور بدو لمونځ

نیت مي کړی دزړه د اخلاصه لمونځ کوم خاص
خدای تعالی لره دوه رکعته سنت مخ مي دی
وطرفته د کعبې شریفي الله اکبر.

فتاوی رحیمیه صفحه ۲۲۶ جلد اول

## دجمعې دلمانځه نیت

نیت مي کړی دزړه د اخلاصه لمونځ کوم خاص
دخدای تعالی لپاره دوه رکعته فرض دجمعې
اقتداء مي ده په داحاضرامام پسې ولاړیم مخ
پرطرف د کعبې شریفي الله اکبر.

فتاوی واحدي صفحه ۲۳۹ جلد اول

**که دجمعه دلمانځه مخکي سنت دی که دلمانځه وروسته سنت وي**

نیت مي کړی دزړه د اخلاصه لمونځ کوم خاص
دخدای تعالی لپاره دوه رکعته یاڅلور رکعته
سنّت ولاړیم مخ پرطرف د کعبې شریفي الله اکبر

کفایت المفتي صفحه ۲۶۷ جلد دریم

## داختر دلمانځه نيت

نيت مي کړی دزړه د اخلاصه لمونځ کوم خاص
دخدای تعالی لپاره دوه رکعته واجب سره
دشپږوتکبيرونود کوچني اختراقتداء مي ده
په داحاضر امام پسې ولاړيم مخ پرطرف
دکعبې شريفي الله اکبر
که دلوی اخترلمونځ ؤ نو بيادي په نيت کښي
لوی اختر ياد کړي ۰ کتاب الفقه صفحه ۵۵۰ جلد اول

## تحية الوضوء

مخکي تردې چي داوداسه دلوندوالي څخه لاوچ
سوی نه وي دوه رکعته لمونځ کول مستحب دی

## دحاجت لمونځ

که چاته کله يو کار ورپيښ سي يا ديو کار
حاصلول غواړي نو دوه رکعته لمونځ کول
مستحب دی بيا دالله تعالی جل جلاله تسبيحات

او پر نبي عليه السلام درود ويل خپل حاجت غوښتل دالله جل جلاله څخه.

## دتوبې لمونځ

له چاڅخه چې يوه ګناه وسي نو هغه ته مستحب داده چې دوه رکعته لمونځ وکړي اودخپلي ګناه بخښنه دي دالله تعالی جل جلاله څخه وغواړي .

## دقتل لمونځ

کله چې يو مسلمان قتل کيږي نوهغه ته مستحب داده چې دوه رکعته لمونځ وکړي او دخپلو ګناهونو مغفرت له الله جل جلاله څخه وغواړي

## داحرام لمونځ

چې څوک حج کوي نو داحرام دتړلو لږ مخکي دوه رکعته لمونځ سنّت وکړي .

## داستخارې لمونځ

کله چې چا ته په یو کار کې تردد او شک وي چې ویې کړم او که یا نو بیا دوه رکعته نفل کیږي وروسته هغه دعا او خپل کار ویل کیږي.

## دتسبیح لمونځ

صلوة التسبیح لمونځ مستحب دی څلور رکعته کیږي درې سوه تسبیحات په کښې ویل کیږي چې ډېر ثواب لري.

## دنصاب درې قسمونه دي

﴿۱﴾ اول: هغه نصاب دی چې په هغه کې وده او نمو شرط دی ددې نصاب سره دزکات او دمال ټول احکام تعلق لري. ﴿۲﴾ دوهم: هغه نصاب دی چې دهغه سره څلور احکام تعلق لري زکات اخیستل ورته حرام دی او اخترې پر واجب دی سرسایه پر واجبه ده او دقریبانو نفقه پر واجب ده په دې نصاب کې نه نمو شرط ده نه تجارت او نه دکال تېرېدل. ﴿۳﴾ دریم: نصاب هغه دی چې په هغه سره خواست او فقر کول

ورته حرام دی بعض فقهاء رحمه الله وايي چي پنځوس درهمه يا دهغه د قيمت په اندازه شئ ولري او بعض فقهاء رحمه الله وايي چي نفقه ديوې ورځي اوشپې لري نو فقر كول ورته حرام دی .فتاوی واحدي صفحه ۳۰۹ جلد اول

## داختري دوجوب شرطونه شپږ دی

﴿۱﴾ اول : مسلمان به وي پر كافر باندي اختری نه دی واجب .

﴿۲﴾ دوهم : مقيم به وي پر مسافر باندي اختری نه دی واجب .

﴿۳﴾ دريم : بالغ به وي پر نابالغه باندي اختری نه دی واجب .

﴿۴﴾ څلورم : ازاد به وي پر مريي باندي اختری نه دی واجب .

﴿۵﴾ پنځم: عاقل به وي پر لېوني باندي اختری نه دی واجب.

﴿۶﴾ شپږم : مالداره به وي پر مسكين باندي اختری نه دی واجب . بدائع الصنائع صفحه ۶۳ جلد پنځم

# دسر سايې دوجوب شرطونه (۳) درې دي

﴿۱﴾ اول : : ازاد به وي.

﴿۲﴾ دوهم : مسلمان به وي.

﴿۳﴾ دریم : دنصاب په مقدار مالک به وي .

**یادونه :** دمولوي **محمدخان مقبول صاحب** نور کتابونه هم چاپ ته پر لیکه دي ، چې دوه کتابه به یې ډېر ژر دچاپ په ګېڼه وپسولل سي.

**یوکتاب** په نامه **رسالة فی الفرق والتعریف** دی چې په دې کتاب کي داشیاؤ تعریفات دي وړه رساله ده یعني دریاب په کوزه کي دهر عالم اومتعلم لپاره ګټور دهري مدرسې ضرورت دهر کتابتون زینت دی همدا نن یې تلاش وکړئ .

**دوهم کتاب** یې **لس ګنهګاري دلي** داحادیثو په رڼا کي . داهم وړوکې رساله ده دهغه چا لپاره ډېره ګټوره ده چاچې دتوبې تکل کړی وي . هیله ده چې الله عز وجل مو ترې مستفید کاندي .

ستاسو په نیکو دعاګانو کي مو مه هېروئ . اداره

ددعاګانو په هیله **حافظ فیض الله** دمؤلف وړور .